


د کتاب پېژندنه :

د کتاب نوم : ستا یاد ، زما ملګری (شعري ټولګه)
شاعر : بشیر ګواښ ( بابک)
اړیکې : hajrulaswad@gmail.com
۰۰۹۳ (۰) ۵۴۹۵۶۰۷۰
چاپ کال : ۱۳۸۵ لمریز
کمپوزچارې : جاوید احمد همیم
اوډون : راحت ګل زیارمل
چاپ زیار : عطا محمد هیله من او عبدالله سهار

انلاین چارې : لراوبر لوی افغانستان http://www.larawbar.com

ډالی :

خدای ښښلې خوږې مور ته، چې د تګ سره يې ټولو خوښيو کډه کړې.

## مننه :

زواک خبري آژانس د سيمه ايزو خبرونو د سمونکي (ايډيټر) جاويد احمد هميم چې که هلې ځلې او هڅونه يې نه وای نو خدای
دا کتاب د چاپ په ګاڼه سمبال شوی وای. له ځوان شاعر راحت ګل زيارمل څخه چې د کتاب په دننۍ اوډنه کې يې برخه واخيس
ملګري شاعر عطامحمد هيله من او د خواږه غږ لرونکي شاعر عبدالله سهار څخه چې په ورين تندي يې د دې کتاب د چاپ چار
پرمخ يوړې، د زړه له کومې مننه کوم.
مدارنګه له زلمي انځورګر، ګران حشمت حيات څخه ډېره ښښنه غواړم چې په بيا بيا جوړکړی د دې کتاب د پښتۍ انځور يې را
ورک شو ،دهغه له ډېر زغم او زيار څخه ځانګړې مننه کوم.

## د بشير ګواښ په اړه :

## اسدالله غضنفر ( په شګوکې چينه پروګرام ) ۲۱ اپريل ۲۰۰۶

عي شاعران ترډېره حده له کتابونو نه ،بلکې له خپل ژوند اوچاپېريال الهام اخلي.د ښاغلي بشيرګواښ په قابوټولوشعرونوکې
خپلې تجربې ، د ده د خپل ژوند او چاپېريال عکسونه وينو.
د ته چې څومره کاميابۍ مانا ورکوي ،ناکامي يې هم ورکولی شي ،بشيرګواښ ته چې د مور مړينې کوم درد وربخښلی دی،له
درده، ده هنر جوړ کړی. ((ډيوې بلې کړم)) همدغه هنر دی.

## عزت الله ځواب- ننګرهار

د ګواښ د پخوانۍ شاعرۍ سره هم اشنا يم او اوسنۍ مې هم په يو ځل وليده، د ګواښ په پخوانيو غزلو يو ( سيوری ) خور و او
ې د لمبو تپ ته يې لاسونه تاوده شوي ؤ؛ خو اوس پکې د مور د مينې او عاطفې خواږه او د هغې د بېلتون درد ډېر زورور دی،
په ګواښ يې رڼا ورځ توره شپه کړې.
لږ خو څه و وايه خپه يې، ولې چپ غوندې يې
دا رڼا ورځ به په مسا شپه شي چې خبرې نه کړې.

## ثنا ونود سِنګ، نوی ډهلي، هند

ته غواړې‌داسې يو البم وګورې چې په يوځای پکې د غم،درد ،خفګان، ناهيلۍ،زغم،مينې اوخوښۍ انځورونه په ډېرهنري توګ

سودل شوې او ځای پرځای شوې وي، د بشير (ستا ياد ، زما ملګری) وګورئ. دا همدغسې يو البم دی. زه بشير ته د هغه د
بيت په اورولو سره زيری ورکوم چې:
((ستا د غزل هره مصرعه په زړه کې لاره کوي))

نذير احمد نذير، کابل

ابښ په شعرونو مې رخه راځي، کاشکې زما وای او ((ډيوې بلې کړم)) نظم چې مورته يې ليکلی دی، ما ژړوي. که همدا يو نظم ي
ما رارسيدلی وای، هم ما به ويل چې ګوابښ زما د خوښې شاعر دی. نو دده په خپله خبره:
يو هنرمند د شپې کوي د چا د هجر کيسې
هرې سندرې ته يې نام خدا ، وايمه زه

ملالۍ خلجي، کابل

پلو ګرانو د جدايئ، د بې وفايئ، د ټولنې د بې انصافۍ،د افغانانو بدبختۍ، يا د دوستانو يادونه او هم داسې نور حالات ديو
د سپيڅلي شاعر جوړيدو سبب کيدای سي خو نه د شاعر جوړيدو.
څوک شاعر نه وي خوزما په نظر هر پښتون، شاعر او هره پښتنه، شاعره ده، هغه صرف و يو څه ځلا ته اړه لري . په دې وجه زما
ښ بشيريو طبيعي شاعر دی او دده دژوند د حالاتو له وجې بشيرپه ډېره ساده او اسانه ژبه تژدې هره هغه موضوع په پام کې نيولې
ې يو حساس څوک يې فکر کولای سي. د هغه شاعري يوازې د ځوانانو نه ده ولې چې هغه ډېر ژورفکرکړی او په ښه توګه يې خپ
فکر په خپلو شعرونو کې انځور کړی دی.

ډاکټرمنقادالرحمن رودوال،کابل ـ ( په شګوکې چينه پروګرام ) ۲۱ اپريل ۲۰۰۲

يرګوابښ شعرونه رواني لري. دی هېڅ درانده کليمات نه کاروي او په شعرکې يې نه لري. که لري يې ډېرکم يې لري. بل شی چې
په شعرکې دی هغه د متضادو کليمو تړون دی.
زه دې په خپل يادپسې تړلی يم
ته دژوندله قېد ازاده شوې يې
شيرګوابښ په شعرونوکې عيني انځورونه هم ډېر زيات دي اوکمال يې په دې کې دی چې دغه ټول انځورونه د ټولنې سره تړلي د

ولي محمد کنډيوال ـ جلالکوټ

رښتيا ووايم او ښه په ډاګه يې ووايم نو ډاکټر بشيراحمد ګوابښ او شاعري يې يو له بل سره هېڅ اړخ نه لګوي،او دا ځکه چې

اکټر ګوابښ د شعر ژبه دومره روانه ده چې د لوستونکي د عقل غابښونو ته هېڅ ضرر نه رسوي خو ، پخپله بشیراحمد ګوابښ بیا
همدې غابښونو ویستلو ډاکټر دی.

عطامحمد ((هیله من)) ، جلالکوټ

څه هم ګوابښ دا ډېر کلونه د یو کلیوال ژوند پر ځای ښه ښاري ژوند لري او دغه ښاري ژوند لږ، ډېر دده پر ژبه تاثیر کړی مګر دد
م ژبه اوس هم هماغه ساده او روانه کلیواله ژبه ده . دی د هماغه کلیوال ژوند چاپیریال په خپل شعرکې را اخلي چې دده وینا ته
خوند اورنګ وربښلی دی.
وه بله ځانګړنه چې د بشیر شاعري یې لري هغه د لوړ خیال او ښه فکر تر څنګ په شعر کې د نویو او ښکلو ترکیبونو کارول دي.
بشیرد ((کېنسر))په نامه شعر ولولئ، د درد ،مینې،خیال،عاطفې اوخلوص یوه ځانګړې تابلو تشکیلوي.

انارکلي هنریار ، کابل

له چې د بشیر ګوابښ په شان شعرونه لولم او یا هم د نورو هیوادوالو شعرونه مې له نظره تېرېږي، زړه مې غواړي چې کاش زه ه
مره وای، خو پوهیږم چې له دې وړتیا څخه بې برخې یم. دا د خدای یوه ځانګړې ورکړه ده چې خپلو ځانګړو بندګانو ته یې په نص
کړي.
رنږ د ځوان شاعر بشیر ګوابښ شاعري او وړتیا د ستایلوده. کله مې چې د هغه شعرونه ولوستل، ډېر لوړ وو ، هغه د اغیزمن کا
ګه خپل شعرونه خپلې اروابښادې مور ته ډالۍ کړی.د بشیر ګوابښ څخه چې د ټولنې زیاتې بدبختۍ یې په شعر کې رانغاړلي د
هیله لرم چې دغه هڅې ته دوام ورکړي.

ډاکټر بشیراحمد پرهر، جلالکوټ

ردیو قوي مستنطق په څېر د شاعر د باطن ټولې خبرې راسپړي خو ځیني شاعران په دغه خبرو او مسئلو څه نا څه پرده غوړوي
صلي موخه ترې د لږ سوچ وروسته ترلاسه کېږي خو د بشیر ګوابښ شاعري انسان سوچ کولو ته نه اړ کوي بلکې د زړه ډېرې خبر
داسې بیانوي چې هرسړی پرې پوهېږي

عتیق الله ناز ،کونړ

بشیرګوابښ یوداسې شاعر دی چې مینه کوي خو د مینې لپاره دکور،کلي ، مالت له رواجونواو د پلار، نیکه له نوم څخه نه شي

ږېدلی ، هغه ځینې وخت دومره زړور شي چې د مینې د بقا لپاره خپل ژوند قربانولی شي خوځینې وخت دومره ډارن شي چې کلو
،کلونه دکلي تش په نامه رواجونوڅخه ځان نه شي خلاصولي.
دبشیرګوابښ شاعري په واقعیتونو ولاړه ده. هغه داسې مسایل رانغاړي چې زمونږ په ورځني ژوندکې له موږ سره مل روان دي
اوهمدغه لامل دی چې شعر یې په زړونو ننوځي.

بشیر ګوابښ...!؟

یر ګوابښ د ۱۹۸۲ کال دفورۍ په څلورمه نېټه د ننګرهار ولایت د ګوشتې ولسوالۍ په خویزو(خواجه زی) کلي کې دوکیل صـ
اجي روح الامین بشیر په علمي کورنۍ کې زیږېدلی دی. هغه، چې کورنی نوم یې بابک دی، د خپل مور پلار په نهه اولادونو کـ
څم تن دی.بشیر ګوابښ د شاعرانه فطرت د درلودلو او په خپل کورني غني کتابتون کې د مطالعې له کبله له لومړي سره د ادب
یکلو سره مینه پیدا کړې وه او دغه مینه به یې په ښوونځي کې د مشاعرو او ادبي ناستو د جوړولو او اوډلو په ترڅ کې په زبان
وله. که څه هم بشیر غوښتل چې خپلې لوړې زده کړې په ژورنالیزم او یاهم ادبیاتو کې پوره کړي خو د وخت د غوښتنې سره سم ب
اښونو طب ولوست. نوموړي د خبر او ادب سره اړیکې ماتې نه کړي او د زده کړې پر مهال یې د مشرق مجله چلوله او د سولې ا
جنګ راپور ورکوونکې نړیوالې ادارې سره یې خبریالي هم کوله. د زده کړو له پوره کولو وروسته هم په ژورنالیزم کې پاتې شو
وموړی که څه هم هیڅکله د رنځېدلو غاښونو درد ته درمل نه شوخو د ژورنالیزم په ډګر کې یې د خدای ورکړې وړتیا له برکته د
واک خبري آژانس او څانګې مجلې له لارې ډېرې ستونزې او ربښتینولۍ راوسپړلې.بشیر ګوابښ نه یوازې سپین سترګی او زړ
رنالیست دی بلکې یو ډېر خوږ طنز، لنډه کیسه او ناول لیکونکی هم دی. شاعري یې بله هغه وړتیا ده چې خپل دردونه پکې زمـ
خې ته بېدي، پخپله هم ورته ژاړي او نور هم ژړوي. د هغه ټوله شاعري د هغه شاوخوا چاپیریال انځوروي.که څه هم بشیر هر وخـ
سکی او خندان ښکاري خو د مور مرګ او ځینو نورو ناوړه دودونو چې هغه څومره کړولی او دردمن کړی دی، د هغه په شاعرۍ
لیدلی شو ، ښایي همدغه درد یې زړه دومره نازکه کړی دی چې په نه خبره مروریږي، ژاړي او غصه کیږي خو هیڅکله کینه په ز
ې نه ساتي. نوموړی چې د تېرو پنځوو کلونو په شان اوس هم د ژورنالیست په توګه دنده ترسره کوي، د ((ستا یاد ، زما ملګری
سربېره یې څو نورو هنري کتابونه هم چاپ ته سترګې پرلاره دي.

د بشیر د ښو ډېرو بریالیتوبونو په هیله
جاوید همیم
کابل، افغانستان

د زړه خبري :

. د ناخوالواو کړاوونو لومړی نوم دی. هره یوه لحظه یې د مرګ په شان درانده غمونه د ځان سره لري اوکه په دغه ستونزمن یون

مرګ يا کوم ورته زورور در څخه ډېر خوږ ملګرى واخلي بيا خو انسان داسې زرې زرې شي چې راټوليدل يې عمرونه اخلي.

ا د ژوند د ناخوالو څخه د پټېدلو لپاره ډېرو شيانو ته پنا ويوړه. د خپل زړه درد ته د شا کولولپاره د خلکو منځته ننوتم، د ټوک

الو په کولو او اورېدلو سره مې کوښښ وکړ چې په وجود کې پټ درد مې ښکاره نه شي او خپله څېره راته ونه ښايي خو نه پوهې

ې هر ځل ناکامه پاتې شوم.د سکون په لټه مې ځان له خلکو هم ګوښه کړ خو درد لکه د بدن د پوستکي راسره وو او تراوسه يې

يوازې کړى نه يم.

خير....!

ه مې چې د خپل ځان په لټه پسې چيغې کړې او چې له ښه ډېر لټون وروسته مې هم نه دى موندلى نو د ماشوم په څېر مې پښې

زمکه ټکولي او ښې ډېرې کريکې مې وهلې دي.... همدغه کريکې په دې کتاب ګوټې کې راغونډې دي.

کله چې کوم مهربانه راته لاس راکړى او زما اوښکې يې پرې ايښي دي چې پر اوږه يې وبهيږي...همدغه خلوص مې په تورو کې

رانغښتى دى.

کله هم چې د چا په زنګون د خوب ارمان مې پاتې شوى....

کله هم چې د ماښام تيارو ته يوازې شوى يم...

کله هم چې د کلي دسيند پر غاړه مې څوک ياد کړې دي...

کله مې هم چې د ښار په ګڼه ګوڼه کې يوازيتوب احساس کړى دى...

کله هم چې دردر له حده زيات شوى دى...

هم چې يارانو پرېښى يم، له دې نړۍ ناهيلى شوى يم اود شور څخه د پټېدلو لپاره مې ديوې ناشونې هيلې د پوره کېدلو په مو

ر په غېږ کې پنا غوښتې ده......،په زړه کې مې يو څه تېرشوې دي اوپر کاغذ مې ليکلي دي، همدغه د زړه خبرې، دادى ستاسې

وړاندې دي.

ه په دې باور يم چې شعر دلوستلو ، اورولو او پوهيدلو خبرې نه دي بلکې د حس کولو دى. هيله ده چې تاسې هم ((ستا ياد ، زم

ملګرى)) د لوستلو پرځاى ، حس کړئ.

مينه او مننه ،

ستاسې

بشير ګواښ ( بابک)

کابل، ا فغانستان

## لــړليک:

### غزلونه :

...

ژوند ختميدونکی، ژوند ته پای موجود دئ
له دي معلومه شوه چي خدای موجود دئ

زما د مور د ياد له نوره ډک دئ
زما سينه کي داسي ځای موجود دئ

...

په (خونخوارو لارو) ځمه نه ويريږم
ستا ياد زما ملګری دئ، مورجانې

تا چي پرېښودمه لاړې،دغه غم
له هغه وخته راغلی دئ مورجانې

ماشوم خيال به مي تنها کي پښي راشي
ستا لټون پسي وتلی دئ، مورجانې

اوس د خلکو مخ کي تا پسي نه ژاړي
اوس دا ستا بشير غټ شوی دئ، مورجانې

...

زه ځان کي دېره يمه، زه په زړه کي اوسمه
زه بلا يوازي يم، زه په زه کي اوسمه

خاوري يم د حسن، د ښکلا کوڅو کي خور يمه
بيا هم بختور يمه، ديار په پله کي اوسمه

ستا د زړه درزا کي انعکاس د ميني وينمه
ځان په کي بيا بيا اورمه، داسي غره کي اوسمه

اوښکه يم د سترګو په درشل باندي ولاړه يم

زه لکه سوالگر ماشوم، تل په زړه کي اوسمه

•••

یو هنرمند د شپي کوي دچا دهجر کیسې
هري سندري ته یې، نام خدا ، وایمه زه

منم یولفظ یي هم زما ، پر ګټه نه دئ خو بس
بیا هم خبري ته یې، نام خدا وایمه زه

دپیر کیسه کي نه یم، نه یمه قایل دزیارت
خو منجوري ته یې، نام خدا ،وایمه زه

دګوابښ له غم نه هم بلا غمونه زړه کي ساتي
څکه ملګري ته یې، نام خدا ، وایمه زه

•••

چي یي ده خواکي دکوچیانو کیږدۍ خړه پړه
پروت مو شهید دئ په همدغه غونډۍ خړه پړه

دخپل سپین غر له دغو سپینو واورو ځار شمه زه
چي مقابل کي یي ده سپینه مانۍ خړه پړه

خدایږو یوه لحظه مي نه وځي له خیاله ځینې
ها د سرک منځ کي ولاړه جلۍ خړه پړه

بېګا هغي سپیني کونتري راته داسي ویل
بغیر له تابه وي دا ټوله نړۍ خړه پړه

دادبشیر دقبر ننبه ده چي هېره یي نه کړئ
دصبر ونه پري ولاړه نرۍ خړه پړه

•••

خال دجبین خلک له کاره باسي
تور لونګین خلک له کاره باسي

زړګیه پام کوه دوکه پري نه شې
دا سره او سپین خلک له کاره باسي

ښکلي یوازې زمانه خوښیږي
دپاخه دین خلک له کاره باسي

یار په وعده باندې وفا نه کوي
هر ماسپښین خلک له کاره باسي

خدای دي داښکلي کړي بدرنګه ګوا ښه!
وایه امین خلک له کاره باسي

...

زړه زما کتاب غوندې
دا پکې ګلاب غوندې

ژوند درته معنی کړمه!؟
ژوند دئ د عذاب غوندې

زه د سرې غرمې په شان
ته لکه ماهتاب غوندې

زما په غزلونو کې
ته یې اضطراب غوندې

زه دا ستا د سوال په شان
ته زما ځواب غوندې

ساه کې مې خوره شي ، چې
غږ وکړې رباب غوندې

ته دوکه او چل فریب
ته لکه سراب غوندې

...

دشنو ونو ځنګل وی او نری نری باران وی

یو ته راسره مل وی، او نری نری باران وی

هغه مابه چي ښکل کړلې، تابه سترګي کړي ټیټې
بس، همغه لمحي تل وی او نری نری باران وی

خلاص به نه وای دغه جنګ، هم دافغان جنګ په شان
چي زما او ستا کتل وی، او نری نری باران وی

بختور شانته ماښام وی، جنتي شان راز ونیاز وی
ته نصیب مي له ازل وی، او نری نری باران وی

غیږه ستا وی له ماتاوه زما ستانه خوږه یاره
موږ په یو اوبل کي حل وی او نری نری باران وی

•••

چي په سرو وینو کال د درد پاتي دئ
لا مي سینه کي حال د درد پاتي دئ

له دي نه پس به نه ورځم نه به یي زه راغواړم
دابه قبوله کړم، خو دلته سوال د درد پاتي دئ

له اوښکو ډکي لوټل شوي سترګې، زړه او هجر
ملګرو ماسره بس دغه، مال د درد پاتي دئ

بیګا اسمان ژړل نن لمر په تیندکو راوخوت
لا پوره شوی نه دئ لا خو کال د درد پاتي دئ

چي ددردمنو زړه ته سر ښکاره کوي بشیره!
زما په سترګو کي خو دا کمال د درد پاتي دئ

•••

رابیي وړه له قافه منتر سترګو کې
یو په بل پسي یي بدتر سترګو کې

بیا یي جوړ تصویر درښو اوښکو کړ
بیا یي دئ راوړی هنر سترګو کې

نن چې يې په شونډو مسکا راغلله
ځان سره يې راوړ اختر سترګو کې

سرې دې له خماره له مستۍ ځينې
ته وا ، چېپه شوی ساغر سترګو کې

امن به دسترګو په جنګ راولو
دروغ دي، دلته نشته دئ شر سترګو کې

هر ځای کې به تاوينمه مينه ستا
څو پورې چې وي مې نظر سترګو کې

•••

نه شينکې چينار شته دئ، نه شينکې ګودر شته دئ
نه دبنګړو شور شته دئ نه مست مازيګر شته دئ

نه خندا دپېغلو شته نه دشاه زلمو اتڼ
نه هم شپه دقدر شته نه ورځ داختر شته دئ

نه کړې پر بلۍ غومبر ها سپينه کوتره اوس
ژبه خوله کې نه لرې، نه يې سپين وزر شته دئ

نشته داختر مېلې، نه دبوډۍ ټال شته دئ
نه دچا لاسونه سره، نه يې شال په سر شته دئ

دلته ځای پر ځای دئ جنګ فصل دسرو رېبي
نه دمينې تخم شته نه دمينې کر شته دئ

اوس چې مې مور نشته دئ،دعاوې يې چې نه لرم
نه پرلار محفوظ يمه، نه مې کور کې ور شته دئ

•••

يو څوک په خوب کې راشي راته غاړه راکوي
تحفه کې راله زړه او مينه دواړه راکوي

ترې غواړم به باران ،شېبې د وصل ،ښکلې يار
قبول به زما سوال شي خدای به واړه راکوي

له سر نه تر پښو پورې سرود شمه سرور شم
چې خوله راته جانان دسیند په غاړه راکوي

اشنا رانه زړه اخلي خو پریږدي راته غمونه
بدل کې د ابادي راله شاړه راکوي

منمه نابلد یم دسپوږمۍ سره ملګرو
خو ښکلی مخ دیار یې راله ژباړه راکوي

•••

داخو ورځې مې زړه ته یوه خبره ځې راځي
پسته پسته خوږه لکه سندره ځې راځي

ډېوې کړې ورته بلې او یو څو اوښکې پرې توئ کړې
زیارت ته هره ورځې منجوره ځې راځي

دچا په انتظار ده که امېل یې دئ ورک کړی
په هر قدم ودرېږي تر ګودره ځې راځي

داپېغله خو کټ مټ ده لکه خور دملالۍ
راوړې زلمو ته غشي تر لښکره ځې راځي

په کومه شپه چې وژاړم په کومه شپه چې ډار شم
په خوب کې راته مور مې ترسحره ځې راځي

•••

خوشبویه به شي ټولې فضاګانې که ته راشې
خورې به شي هر خواته رڼاګانې که ته راشې

هغې همیش پوره غوښتم هغې یوازې نه!
پوره به شي د مور مې دعاګانې که ته راشې

غمونو ،اندیښنو او داسې نورو مې زړه وخوړ
شي ورکې به دا ټولې بلاګانې که ته راشې

یو ختم د قران کوم ملا ، چنې راغواړم

او خورمه پري ښي ډيري حلواګاني که ته راشې

دا سترګي خو مي ستا د ديدن مم پسي ژړيږي
خاموشي به شي دواړه ماشوماني که ته راشې

...

زما ماشوم ښايسته جانانه، پام چي ونه ژاړې
ماته له ټولي دنيا ګرانه، پام چي ونه ژاړې

لا ماښام نه دئ لاس دي راکه لاره لږه پاتې
رسو به مخکي له اذانه، پام چي ونه ژاړ ې

مينه زما او ستا ژوره ده له دي دريابه
کښتۍ وباسوله توپانه، پام چي ونه ژاړ ې

بيا مي ديار دراتلو وخت دئ چرته پاتي نه شي
وربځي دي لري کړه اسمانه، پام چي ونه ژاړ ې

غېږ کي يي ونيوم په سپينه خوله يي داسي ووی
زما بشيره بندېوانه، پام چي ونه ژاړې

مور مي په سرراته لاس کيښود ، راته وي ويل
مرګی مي نيسي له ګريوانه، پام چي ونه ژاړې

...

هغه چي درز به شو دتندر تابه غېږه راکړه
ها توره شپه هغه باران مې، والله ډير يادېږي

دا وربځي زلفي دي له سپښنه مخه لري زر کړه
پړق دسپوږمۍ دشين اسمان مې، والله ډېر يادېږي

اکثره مخي ته زه ږدمه آينه دماضي
ستا په لاسونو کي ګريوان مې، والله ډير يادېږي

چي دراتګ سره يي ګل په شان غوړېږمه زه
هغه سپرلی سپرلی جانان مې، والله ډير ياديږي

یو وخت چي ماهم تري زړه وړی وو زاری یې کړلې
هغه ماشوم شان بندېوان، مي والله ډېر یادېږي

کړنګ چي اذان به شو په نه زړه به یې ووی ګوابنه!
په وړه ژبه «خدای پامان» مي والله ډېر یادېږي

ها چي ماشوم وومه، سیني پوري یې کلک نیولی
هغه د مور دغېږ زندان مي والله ډېر یادېږي

•••

ته کله په ویښه کله خوب کي راله راغلې
زوړ دي کړم له غمه، زلمیتوب کي راله راغلې

عقله! اوس نو نه شي، بېرته نه شم ستنیدلی
ډېر ناوخته راغلې، مئینتوب کي راله راغلې

مور مي په دعاوو وي شړلی عزرایله!
یاد دي شي! ها ته چي وړوکتوب کي راله راغلې

نه مي د چا کور سوی، نه مي څوک وژلي دي
شکر دئ مرګیه! سړیتوب کي راله راغلې

•••

لیونی سړی راغلی
خو ژوندئ سړی راغلی

دګلاب په شان تازه شوم
پسرلی سړی راغلی

زما د زړه په کور مېلمه دئ
یو پردئ سړی راغلی

جینکۍ کوي پري زیری
«پرونی سړی راغلی»

بشیر تانه چي لاس واخیست
شو سړی ، سړی راغلی

...

لکه سندره او ټپه، په زړه کې لاره کوي
داسې دې هر لوظ وعده، په زړه کې لاره کوي

دشینکي خال، دشنو بنګړو دتور لونګ میرمنه
په سرو لاسو وهي چمبه، په زړه کې لاره کوي

سترګې مې ټیټې شي سجدې کړم چې دې ګورم اشنا
دتورو سترګو دې کعبه، په زړه کې لاره کوي

ور دتوبو به يې زاهده مخه ونه نیسي
دمیني تاودعشق لمبه، په زړه کې لاره کوي

اخر قانع شوله آخر يې ووې ګواښه اشنا
ستا دغزل هره مصره، په زړه کې لاره کوي

...

لاسو کې که څه هم هتکړۍ مې دي
نښې په تندي دبندګۍ مې دي

وینه دزړه ورکړم بدل نه غواړم
دغه څوخویونه دخانۍ مې دي

مرګه پام په هېره چې هم رانه شې
لاخو مستې شپې دزندګۍ مې دي

تاعېبونه پټ کړل په دولت باندې
ماپورې خندلې غریبۍ مې دي

...

وا ، دزړه خبرې کړم

ستا ، دزړه خبري کوم

لاس مي په خوله مه ږده ته
لا ، دزړه خبري کوم

وايم ګډي وډي چې
دا ، دزړه خبري کوم

چيرته ځي لږ صبر شه ؟
ستا ! دزړه خبري کوم

ژوند مي څو شېبو لره
را ، دزړه خبري کوم

...

ستوري ، لمر ، سپوږمۍ ، کوم درته راوړمه
ته خو په يو څه لاسونه کېږده!

هر څه چي وو ، تير شولو
نور دي بس په خوله لاسونه کيږده!

ته وا چي شېبه وروسته به والوزي
لږ خو مي په زړه لاسونه کېږده!

وايې به سپوږمۍ تندر نيولي ده
ته دي په مخ سره لاسونه کېږده!

...

درحمان بابا دغزل په لېکه
ديوي طرحي مشاعري په لړ کې

چي لاسونه دي زما دغاړي هار شي
داغمجن زړه به مي هله په کرار شي

خدازده ولي چي هغه مخي له راشي
اننګي يې داسي سره لکه انار شي

چايي سر چايي په پښو وارونه وکړل
پښتانه به خدازده کله رابېدار شي

نوم دحق پر خوله وانخلي هسي نه چې
دظالمو دايره کي ته په دار شې

په پسته ژبه يي داسي راته ووی
بس دئ ځمه هسي نه ګواښه سهار شي

د ۱۳۸۲ کال لومړۍ ورځ

...

مينه دي نه کړم ستا دياد لاره مي پرېښودله
کاڼي نور نه زغمم د داد لاره مي پرېښودله

نه کافر شوی وم او نه مي وو وطن هېر کړی
مشر مي غل وو دجهاد لاره مي پرېښودله

زه دحالاتو تيندکونو دومره پوه کړمه چې
دزنده باد او مرده باد لاره مي پرېښودله

دزندګۍ لمبو پوخ کړی يم تر دي ملګرې
آخ قدري نه کړم، دفرياد لاره مي پرېښودله

بوري هوسۍ راته کتې متې افغانستان ياداوه
غشي مي مات کړل دصياد لاره مي پرېښودله

چي شېرينۍ راسره نوره په لار نه شوه تللی
ځکه بشيره دفرهاد لاره مي پرېښودله

...

داسپېن پړونی، تيتي سترګي دنظره نه شي

نن خو دي ستوري هم جلي، لباس ته لاس اچوي

هغه مغل سالار به دم ګړی په څمکه پرېوځي
هغه دئ ورغی پښتون يي آس ته لاس اچوي

ښايی دي سترګو دي زمونږ مشر نه چل زده کړی
په رڼا ورځ مي دزړګي الماس ته لاس اچوي

څو ځل وعده مي دشرابو پرېښودلو کړې
خو چي رایاده شي دازړه ګلاس ته لاس اچوي

له يوه بل بغير يي نه شي زندګي په دنيا
بشير چي سيند واخلي بابک يي لاس ته لاس اچوي

...

کړې مي داسي اراده، ستاله ليدلو وروسته
تابه خپلوم ده مي وعده، ستاله ليدلو وروسته

درته سجده وکړم که ښکل دي کړم دپلونو نښې
ماته مي کور ښکاري کعبه، ستا له ليدلو وروسته

نور به تري هېڅ يو ښکلی هم جلی دننه نه ځي
دي زړه مي بنده کړه تمبه، ستا له ليدلو وروسته

خدازده چي څرنګه شغلي دي وي په مخ کي پټې؟
په هر چا پوري شوه لمبه، ستاله ليدلو وروسته

...

موري ته رایاده شي او ښه درپسي وژاړم
سترګي مي ملګري وي له زړه درپسي وژاړم

باد دروازه ببرته کړي ګمان کوم چي راغللې
منډه کړم د کور تر کوزه وره، درپسي وژاړم

زما په یوه چیغه به دي زړه سیني نه ولوېده
اوس نو ولي نه راځي چي زه درپسي وژاړم

هغه ورځ مي بده وي چي تا رایاده نه کړمه
هغه شپه مي خوب نه وي چي نه درپسي وژاړم

ډېره موده وشوه چي احوال له تانه نه لرم
خوب کي به مي راشي مورې، که درپسي وژاړم

...

څه عجیبه شانته منظر دئ، څو کلونه کېږي
زما په پښو کي زما سر دئ، څو کلونه کېږي

ای زما مورې! زه دلمر سره جنګ کړلی شمه
زما په سر دا ستا څادر دئ، څو کلونه کېږي

والله که ساهم تري په نره اخستلی شمه
پروت په مری راته خنجر دئ، څو کلونه کېږي

یو ورځ به سیوری هم راورسي داخیر دئ که اوس
زمونږ په دښته کي سفر دئ، څو کلونه کېږي

...

بي د اجازي دزړه دننه سړی راشي
وکړمه تري څو ځله مننه، سړی راشي

څنګه غم ونه پالم څنګه ځای ورنه کړمه؟
دالکه بي کوره بي وطنه سړی راشي

میاشت چي شي پوره کلی کي وایی دا

نن به یو بې روحه، بې بدنه سړی راشي

شته ډېري ناخوالي چې دزغم نه دي
مثلاً ، له کلي بې دبدنه سړی راشي

هو د ښکلو چم لکه وطن د افغانانو!
ورشي ښه خوشاله خو غمجنه سړی راشي

## د خېبر افريدي په لیکه

«ته چې شي خفه، راله خوب نه راځي»
ټوله ټوله شپه، راله خوب نه راځي»

زه بې د دنیا له کاره ووېستم
درد دي رانه وړه، راله خوب نه راځي

ستا تصویر ته ګورم شوګیري کوم
اخلم تري مزه، راله خوب نه راځي

څومري ښې خوږي خوږي کیسې کوي
زما د زړه مېلمه، راله خوب نه راځي

ویل یې د بشیر سره پخلا مې کړئ
راولې هغه، راله خوب نه راځي

ته که هر څومره پردئ یې، لیونیه
په سینه کې مي زړګی یې، لیونیه

ویل یې، ته رانه په لاره خولګۍ غواړې
څه سپین سترګی شان سړی یې، لیونیه

لاس یې مات شه چې به تا په کاڼو ولي
ته له ټولو ګلالی یې، لیونیه

هغه شوخه راته زما په هکله وايي
ای بشيره، ليونی يې، ليونيه!

بيتونه

...

ورځ به نو ځنګه زما ښه شي، چي خبري نه کړې
منزل ته لار به مي اوږده شي ،چي خبري نه کړې

چي کړې خبري ته نغمي وايي سندري وايې
کيسه کيسه او افسانه شي ، چي خبري نه کړې

لږ خو څه ووايه،خفه يې! ولي چپ غوندي يې؟
مورې! دا ورځ به په ما شپه شي چي خبري نه کړې

...

ته لکه د سا په هر يو زړه کي يې
زه لکه هوا غوندي بي کوره يم

زه خو دي پانزيب ته ورته نه يمه
زه خو دي لونګ په شان بي شوره يم

څو کلونه کيږي ژوند کي نشته خوند
څو کلونه کيږي چي بي موره يم

...

زلفي راخوري که، بيا يي واړوه
ورځي پر ما شپي که، بيا يي واړوه

وپاشه د مخ له ډیوو نور صنم
لمر ذري ذري که، بیا یي واړوه

سترګو ته مي سترګو کي ځای راکړه لږ
سترګي مي مړي که، بیا یي واړوه

...

اوس دومره نشته مېخانه کي ساقي
چي پرېښودل مي پېمانه کي ساقي

څوک هم چي سترګي دچایادي کاندي
نوم دي راځي په افسانه کي ساقي

جامونه راچي یي مخونه هېر کړم
نشته وفا په زمانه کي ساقي

...

دوه رکاته هر لمانځه کي زیات کوم
عشق کي دي سوچه لیونی شوی یم

تا نه می بغیر ګزاره ګرانه ده
لږه خو راځه لیونی شوی یم

زلفي زنځیرونه، ټولوه یي مه
زه خو لا تازه لیونی شوی یم

...

ستا دحسن مدحه کي دازړه زما
کله آیاتونه کله شعر وایي

تایوه ټپه وکړه او لاړلې
خلک خو یاسین مړي ته ډیر وایې

•••

اوس د زندګۍ په بندګۍ باندي خوښ نه یمه
اوس لکه ځان مرګی برید کوونکی مي ځان بدي شي

ځار دي له قدرته شم، هر درد زما قبول دئ
خو زه لکه ماشوم یمه، منونکی مي ځان بدي شي

•••

کله ناکله له جانانه بغاوت کومه
څومره ساده یمه له ځانه بغاوت کومه

نور دي دلېچو بنګړي مخه زما نه شي نیوی
نور دي دمېني له زندانه بغاوت کومه

•••

دلیوني سترګي راډکي شوي چي ومي پوښته
«ستاد سندرو هغه ښکلی رباب څرنګه دئ؟»

چي یې له زړه ویل کنه؟ خو نن یې وپوښتلم
چي دي زړګی ستي او کباب څرنګه دئ؟

•••

اوس هم د لیکلو او لوستلو بلا شوق لرم
اوس هم په ورغوي ستا نامه لیکم او لولم یې

...

تېره شپه مې ته په خوب ونه لیدې
تېره شپه مې کور کې څراغ بل نه وو

...

څه کنه ! دا یو ثواب خو وکړه
راشه زمونږ کلي څو ورځو له

...

اوس هغه لویه لاره شاړه پرته
پر کومه لار چې به درتلمه درته

...

راشه که لږ رحم دې په زړه کې وي!
لوېږمه، خزان وهلې ونه یم

...

غم سره نه شم پرېښودلی دوستي
د ماشوموالي نه ملګری مې دئ

•••

سر درد لکه ماشوم د خوب په غیږه کې ځان پټ کړ
چې تا په غیږ کې ونیوم، تندئ دې زما ښکل کړ

•••

دا سترګې دې له خپله عمره، ډېرې زړې ښکارې
ته هم لکه چې مانه بغیر ځانله ډېره ژاړې

•••

غاړه غړې پرېوته ډیوو سره
هغه چې په ګلو به یې خوب کاوه

•••

ګرځمه په ځان پسې لټون کوم
ناست یمه په تا پسې ژړېږمه

•••

دا ژوند لکه څادر د کوم غریب
چې پښې پکې راونغاړمه، سر مې ترې ښکاره شي

...

ګمان د ایمان زیان دئ خو درواغ لکه چي وايي
ته نن دي په خبرو کي ساګاني اخلي ډيرې

...

زه په آخر کي همغه له ژونده وويستلم
څوک چي مي ژوند ګاڼه او ژوند مي ورته نوم ايښی وو

...

لکه ليلام کي چي څوک اخلي څه شی
داسي يي زه په يوه مسکا واخستم

...

په لاره ولي مي يوازي پرېږدې
لاره خو چاته لاره نه ښايي

...

دکور په نوم چي يي جونګړه وي دخوړ په منځ کې
هغه دي نه کوي دوستي دبارانونو سره

...

په جوړيدو کي هسي نه نور هم ذره ذره شم
همداسي مات ښه يم اشنا ، لاسونه مه راوړه ته

...

یوه بي ژبي ، یوه معصوم سره خبري کوم
داته چي نه يي ستا له نوم سره خبري کوم

...

جوړ دجدايۍ اندېښنو چوپ کړلي دريادي شوې
سپېنه خوله دي موم کړه دخبرو منځ کي غلي شوې

نظمونه

دېوي بلي کړم

نن مي موري بيا ژړا ته زړه شوی
نن مي موري بيا راياده شوي يې
زه دي په خپل ياد پوري تړلی يم
ته د ژوند له قيد ازاده شوي يې

تا خو ماته ويل چي روغه جوړه يې
اوس نو څنگه غلي يي خاموشه يې
ولي ماسره خبري نه کوي
ولي له ما تللي يي خاموشه يې

بيا درنه هغسی هرکلی غواړم
تا ته به چي راغلم تا به ښکل کړمه
زه به د دنيا غبار وهلی وم
تا ته بهٔ چي راغلم تا به گل کړمه

اوس هم چي زه کله کور ته لاړ شمه
ټول واړه رامنډي کړي او ښکل يي کړم
هره يوه بوډۍ مي خپل بچی گڼي

زما تنې راغونډي کړي او ښکل يې کړم

تا به ويل چي زما سترګي ليدل غواړي
پاڅېږه خوړي موري راغلی يم
ما د ژوند اغزني لاري ګام کړلې
تاته زه پښي توري راغلی يم

موري چي اوس ستا دعاوي نه لرم
چاسره هم جنګ نه کړم، بايلمه يې
اوس نو خوشحالي په ژوند کي نشته دئ
غم د پاسه غم دئ چي پالمه يې

اوس چي څه هم غواړم په لاس نه راځي
اوس نو ښه پوره ناکامه شوی يم
تانه مي بغير هر څه هېر شوي دي
زه يوازي شوی يم، زه بې پامه شوی يم

موري ما دي غېږه کي ويده کړه ته
ټوک ټوک يم په زړه باندي داغلی يم
پرېږده چي يو څو شېبې تري پټ شمه
زه د وخت ناخوالو سم ځپلی يم

موري چي کابل ته کله لاړ شمه
تکه توره شپه کي ډيوي بلي کړم
ستا تصوير راواخلم ورته وژاړم
زه بې موره شپه کي ډيوي بلي کړم

پنډ دواوي واخلم چي ناروغ شمه
خو بياهم پري زما ګوزاره نه کيږي
خدای مي دي اوس زر تا سره يو ځای کړي
زما په دي دنيا ګوزاره نه کيږي

•••

## زیری

تاوی هیڅ کار نه کوي
تاوی اوزګار ګرځېږي
زیری درکوم
اوس نو بې کاره نه یم
ځان له مې کار پیدا کړ
«زه هر سهار
تایادومه ډېر ه
تاپسې ډېر ژړېږم
تاته شعرونه لیکم»
زیری درکوم
اوس نو بې کاره نه یم
ځان له مې کار پیدا کړ...........

•••

(دخپلي ۲۳مي کلېزي په ورځ)

## تحفه

ویل یې تحفه درکوم
ماویل خیر خوبه وي!؟
ویل یې « هیرجن یې بلا!
نن ده کلیزه داستا »
شومه مسکی
ماوی « ښه څه راکوې؟»
ویل یې
«دازړه دي واخله
نوره دې مینه نه کړم»

...

ارمان

مابه پرې
ډېر ګلان
شیندلي وی خو
اشنا په داسې وخت کې لاړو رانه
چې تشې شوې وې
دونو غېږې.

...

پخیر راغلې

د پاپیو نه دي ځار، شم پخېر راغلې
شکریه، مهرباني، ګلي مننه
ما مي ور درته دزړه دې پرانیستلی
قدم زما په قدم ږده، راځه دننه

شکر شکر دې چې راغلې، راشه کښېنه
دمه سازه کړه، منګي نه اوبه واخله
بسم الله کړه او په شونډو مي بیا ښکل کړه
خوله خوږه کړه، له خوږو نه خواږه واخله

سمه دمه دلالونو خزانه یې
د غني خان ترانې غوندي ښاېسته یې
کوچنیوالي په شان پاکه یې معصومه
ته د تېرې زمانې غوندي ښاېسته یې

دانګورو له اوبو نه جوړه شوې
خمارې د مېکدې د لمونځ په شان یې
سر تر پایه مجموعه د ثوابونو

خوندوره د جمعي د لمونځ په شان يي

ستا وجود زما وجود دئ، ورکه مه شي
ته مي کټ مټ دپښتو ژبي په شان يي
دټپي غوندي په زړه کي دېره کېږي
او خوږه يې، د بلال د خولي اذان يي

د پاپيو نه دي ځار، شم پخېر راغلي
شکريه، مهرباني، ګلي مننه
ما مي ور درته دزړه دئ پرانيستلی
قدم زما په قدم ږده، راځه دننه

شکر شکر دئ چي راغلې، راشه کېنه
دمه سازه کړه، منګي نه اوبه واخله
بسم الله کړه او په شونډو مي بيا ښکل کړه
خوله خوږه کړه، له خوږو نه خواږه واخله

ته خبره يي چي زه څومره غمجن يم !
ته خبره يي چي زه څومره يوازي !
بس دغم پکي همېش تګ او راتګ دئ
او تمبي مي د زړګي دي ورته وازي

زه د درد سره ملګری يم، ملګري !
غم مي ډېر کلونه وشول انډيوال دئ
اوس مو راشه درشه نشته دئ په منځ کي
اوس زما او د خوښۍ منځ کي دېوال دئ

چي له کومي مي مور مړه ده ،زړه ناجوړ دئ
د دنيا له رنګينيو ځني موړ دئ
اوس دکلي د مرغيو اواز ناست دئ
اوس دښار مزه ګۍ نشته ، ښار مو سوړ دئ

د پاپيو نه دي ځار، شم پخېر راغلي
شکريه، مهرباني، ګلي مننه
ما مي ور درته دزړه دئ پرانيستلی
قدم زما په قدم ږده، راځه دننه

شکر شکر دئ چي راغلې، راشه کېنه

دمه سازه کړه، منګي نه اوبه واخله
بسم الله کړه او په شونډو مي بيا ښکل کړه
خوله خوږه کړه، له خوږو نه خواږه واخله

تانه څه پرده، ښکاره يي درته وايم
مستي مستي جينکۍ زما ملګري
پستي شونډي يي له شاتو نه خوږي دي
سپيني سپيني ښاپېرۍ زما ملګري

چي زه نه يم تر راتګ راپسي ژاړي
داسي ډېري جينکۍ مي انتظار کړي
ټوله شپه ستوري زما په هکله پوښتي
لېونۍ دي، لېونۍ مي انتظار کړي

خو يوي ته مي هم زړه نه دئ ورکړی
او يوه يي هم زما په زړه کي نشته
دهوس له ګناه داسي پاک او صاف يم
لکه څرنګه چي ستا په زړه کي نشته

د پاپيو نه دي ځار،شم پخېر راغلي
شکريه، مهرباني، ګلي مننه
ما مي ور درته دزړه دئ پرانيستلی
قدم زما په قدم ږده، راځه دننه

شکر شکر دئ چي راغلې، راشه کېنه
دمه سازه کړه، منګي نه اوبه واخله
بسم الله کړه او په شونډو مي بيا ښکل کړه
خوله خوږه کړه، له خوږو نه خواږه واخله

دا ذري ذري زړګوټی مي راټول کړه
دغمونو د دردونو ښاريه ده
په ياسين د ميني دم يي کړه، ملګري !
د بد روحو د روحونو ښاريه ده

په پلومي اوښکي وچي کړه محبوبي !
داشوګير وهلي سترګي مي دمه کړه
د ديدن په ثوابونو غسل راکړه
ما د زړه په جومات ګوټي کي چېله کړه

...

## وصیت

دادتېر
مازیګري لمر
په تلو تلو کې
راته وایي
«سره یو شئ لرو برو
کنه زما په شان ډوبېږئ».

...

## ها دي یاد پږي.....!!!

هادي یاد پږي!
چي ماشومان وو مونږه
ته هم کوچنۍ وي او زه هم کوچنی وم
نه مونږه ښه نه مونږه بد پېژنده
نه مو فنا نه مو ابد پېژنده
نه مو غمونه خپګان پېژنده
نه مو رقیب نه مو هجران پېژنده
بس مونږ خوښي او خوشحالي پېژنده
مینه مو زړه کي ګلابي پېژنده
ټوله ورځ لوبي به وي
ټوکي ټکالي خنداګاني به وې
هسي دټوکو ژړاګاني به وي
دخوړ په غاړه به مو
له لمدو ډېرو شګو
واړه کورونه جوړ کړل
او په ګورګورو به مو
واړه ځانونه «موړ» کړل

ها دي ياد ېږي!
چي جومات ته به تلو
او له ملانه به مو
بغدادۍ لوستله
ملا به وکړه شروع
«الف» الله، «ب» بسم الله ده بچو!
«ج» ده جارو او «ح» حلوا ده بچو!
مونږ به په پټ او شیطاني انداز کې
سترګي ور واړولي یو بل ته
په تنکو تکو سرکو شونډو به مو
ژبي راکش کړي چي حلوا یاده شوه
بیا به مو زړه کي څه دعا یاده شوه!

دچینارونو په دېره کي به مو
دیخو سیورو لاندې
«پټ پټونی» کاوه
ته به له ماپټه شوې
مابه دسترګو او دزړه په رڼا
ته لټولي لټولي جلۍ
ترڅو پیدا به مي کړي
دزوړ چینار دهغه وني شاته
چي پري انځور وو
دوه دمېني زړونه

هادي یاد ېږي!
یوه ورځ غصه شوې
په څه خبره رانه ته خپه شوې
له مادي مخ پټ کړلو شادي کړله
ما په وړوکي ځان بلا دي وړله
ماپه وړه ژبه منت در وکړ
دپخلاینې به مي ست دروکړ
داستا مي ونیوله زنه یاره
له تا مي وغوښته بخښنه یاره
ته لا وړوکي وې کوچنۍ وې جلۍ
په بدن نرمه وې تنکۍ وې جلۍ
درحم توري ستا پر زړه او خولګۍ
پاس له اسمان راتوی شول
غبرګ کي دي ونیوم پخلا شولو بیا

هادي یاد یږي!
چي باران وریده
زلی هم ښه ډېره وه
دتندر درز شو
او ته وویرېدې
زما په غېږ کي دي پنا واخسته

موږ بې خبره وو له وخته ځېنې
له خپل بدرنګ رښتیني بخته ځینې
داوخت ظالم لکه دباد تېرېده
زموږ ماشومو اداګانو ته
هیڅ صبر نه شو
له مونږ یې واخیستې ماشومې هېلې
زه یې زلمی کړم ته یې هم پېغله کړې
زموږ ترمنځ یې دیوالونه هسک کړل
او...
یوه ورځ
زما په ترېخ ژوندون کې
داسې راغله
چې ته مې ولیدې
تا پټ کړلو مخ
مادرته بیا دماشومانو په څېر
لاسونه وغځول
چې ګوندې غېږه راکړې
خو تا په لنډو هېښونکو تورو
یو لنډ ځواب راکړ
«ګرانه زړګیه!
زه اوس پېغله یم ته هم زلمی یې
ماته به اوس
په ها وړوکي انداز
نه راګوري
ماته اوس
وخت دا اجازه نه کوي
چې زه دې
تاسره بیا وکړم لوبې
چې زه دې
تاسره بیا وکړم لوبې»

...

د اردو د یوه بیت ژباړه

ذهن

دلته به چاسره
ته دومره مینه نه کوې
چې، بیا یې نه شې هېرولی اشنا
ځکه چې دلته،
ددې خلکو ذهن
دموسمونو په شان
زر بدلېږي

...

د اردو د یوه بیت ژباړه
خو....

شړه مې مه له ځانه
څوک به په میاشت دډسمبر کې ګلې؟
په مېنه سور سالو په سر کړې درته
چې بارانونه دې
خیشته پیشته کړي
ږلۍ دې هم ووهي
بیا به دریاد شمه زه
خوزه به نه یم ګرانې
درنه به لیري لاړ یم

...

## ویر

زما په ویر کي هره خوا ناري وې
زما په مرګ باندې
ټول کلي ژړل
زماپه قبر باندې
دکلي انجونو
خپل بنګړي واچول
او خپل شینکي ټیکري یې
زما په زیارت خواره کړل
د صبر ونه یې
زما دقبر
سرته وکرله
سپیني منګولي یې کړي پورته رب ته
راته یې وکړه دعا
«ګور دي شي ستا ګلونه»
خو هغه دنګه جلۍ
ها دهمزولو میره

چي پري مئین وومه زه
ورسره مینه مي کړه
چي به ویل یې ماته
«نرۍ نرۍ تبه مي نیسي
چي دي ونه وینم کاږه واږه بریتونه»
اوس دفطرت
دموسمونو په شان
ټوله بدله شوله
اوس یې پر خوله باندي ده داخبره
«واخلئ یانه رانجه یې واخلئ
نه یې یاري کړم نه یې ننبي ګرځومه»

...

نو....

دزولنو
شرنګا کي لوي شومه زه
دبنګړو شورسره
نو
څه بلد شوم؟!

•••

خدایه

دجنتونو سپیني سپیني حورې

لیري دبل جهان خبري خدایه

ماته مې

خپله کلیواله راکړه.

•••

څه.....

یوازي ښکه
نو

زه واوسېږم
نغوذو بالله!
خدای خو نه یم!

...

ملکه

ها دخیرنو
او شکېدلو جامو
سوري سوري ټیکري
سوالګره جلۍ
که وه په بل هېواد کې
قسم دئ وه به
((ملکه دحسن))

...

؟

څنګه یو ځای به شو؟

زه نه پوهېږم
زه توره شپه دکلي
ته لکه
لمر د ورځې........

...

د انګلیسي ژبي د یوه شعر ژباړه

یادګار

داننګو په شان یې
ګلابي رنګه پاڼه راوړه راته
ویل یې
«څه داسي راته
ګرانه ته ولیکه چې
ستاوي یادګار راسره»
ماپاڼه سپینه پرېښوه
خو په آخره کرښه
مي امضا وکړه
ورته ومي لیکل
«پاس چي ته هر څه لیکې
زما قبول دئ قبول
ځکه زه خپله ګلې
یمه دا ستا
دفیصلي منتظر....»

...

د پنجابي ژبي د یوه شعر ژباړه

هغه جلۍ...

هغه جلۍ
لکه غزل دشاعر
لکه جادو دساحر

لکه دسترګو ساغر
لکه نغمه درباب
لکه غوټۍ دګلاب
لکه دمیني کتاب
لکه هوا دسهار
لکه دمیني خمار
لکه اواز دابشار
لکه شپیلۍ دشپونکي
لکه درزا دزړګي
لکه اوبه دمنګي
لکه نغمه دبلبل
لکه مطلع دغزل
لکه شمله داتل
لکه ښایست دسپوږمۍ
لکه اواز دشپیلۍ
لکه دژمي ږلۍ
لکه دوصل باران
یالکه خیال دجانان
خو له ما دومره لیرې
لکه سپوږمۍ داسمان

...

واده

په ټیلي فون یې
راته ووی داسې
ته خامخا به راځې
سبا واده دئ زما

...

## زړه

مامي دازړه
چاته ښودلی نه دئ
ځکه زه نه غواړمه
چې څوک داستا
داوسیدلو
سیمه
وپیژني.

•••

## کور دي ودان

درته دعا کومه
کور دي ودان
چې دي یوازي کړمه
پري دي ښودم
ایله مي ژوند وپیژاند
پوهه شوم په ژوند

لا زما ذهن په پرده ساتلي
چې به دي سترګو ته وم سترګي سترګې
مابه دشیخ خبره
چې :
((خدای څوک نه شي لیدئ، مه یې ګورئ))
کړله دروغ ثابته
او وبه مي لید
چې خدای ستا سترګو کې دئ

ښکته به شوم پري به وتم
بلا شېبه وروسته به
خړ تندئ راپاڅېدلم
ماعبادت به وکړ
شېخ به کافر ګڼلم.

درته دعا کومه کور دي ودان
چي دي يوازي کړمه
پري دي ښودم

اوس به نو څوک
ماته کافر نه وايي
نه به دخلکو په خوله
زه ليوني يادېږم
کور دي ودان
چي دي يوازي کړمه

...

دانګليسي ژبي د يوه شعر ژباړه

کاش!

کاش
چي هوا وی اشنا
کله نا کله خوبه
داستا پر جسم
لګېدلمه زه.

•••

لار!؟

څه عجیبه سړی یم
پر هغه لار دي انتظار کومه
چي نه دي کورته درځي
او نه هم
ستا دکلي لار ده.

•••

کور!؟

له ما چي بېل شوي اشنا
دغسي پاتي شومه
لکه دکور چي دېوالونه نه وي

•••

د اردو ژبي د یوه شعر ژباړه

لیونۍ

څه لیونۍ جلۍ ده؟
څه لیونۍ ملګرو؟

زما خطونه يې ټول
ټوټه ټوټه کړل
او راته وه يې ويل
«هسې نه خلک يې
راسره وګوري»
خو خدازده بيايې
دې ليونې زړه ورته څه وويل؟
چې شوه لګيا
او دخطونو ټوټې
يې سره ټولې،بيرته يو ځاى کړلې
څه ليونۍ جلۍ ده!!

...

ګيله

ستا مېنې ړوند کړمه زه داسې صنم
چې راته لويه دنيا نه ښکارېده
وه راته ياده دژوندون کيسه خو
ماته منې چې رښتيا نه ښکاريده

چې ځاريدمه دې له تورو سترګو
پر ما دې هر ادا اثر کړى و
دومره زر ښکېل دې کړم په خپله لومه
ضرور دې څه جادو منتر کړى و

لا خو مې هېرې نه دې يادې مې دې
زيړ مازيګر ستا دبنګړو سندرې
روح پارونکې روح ښوونکې هغه
دسپېنې خولې دې سپېنې ښې خبرې

ړلۍ به وه تندر به و لوېده ته
جلۍ زما په غېږکې پټه شولې
مابه له قصده ځان نه بېله کړلې
ته به مې بيا په غېږ کې پټه شولې

چې به دسيند مستې خمارې څپې
له خپل ساحل ځېنې خولګۍ واخسته
تابه هم لاس تاو کړ زما له غاړې

بیا به دي مچه په سیالۍ واخسته

ستا په اوږو دتورو زلفو ولونه
لکه پراته وي په چندڼ مارونه
زه یي هیرومه خو هېڅ نه هېرېږي
لا ځوروي مي ستا یادونه غرونه

په اننګو مي ستا دشونډو رنګ وو
زه یي منمه چي دا وینه نه وه
خو څنګه هېري کړم دا ټولي کیسې
څنګه باور وکړم چي مینه نه وه!؟

مېنه رښتیا دي وه که خوب ووصنم
هېڅ یي په سور او بور پوهېږمه نه
راته بلبل دعشق سبق ښودلی
خو اوس یي زه په شور پوهېږمه نه

له تانه نه، له خدای ګیله لرمه
چي زه یي ولي کړم پیدا په دنیا؟
ولي دعشق پر تار یي وتړلم؟
بیا یي کړم بېل له خوږ اوښکلي اشنا

زه دامنم خدای دصابرو مل دئ
خو زه دصبر په چل نه پوهېږم
لاره یوه ده هایي هم تړلې
که نه دځان په مرګ ډېر ښه پوهېږم

...

سپرلیه!

زما اشنا زما میلمه سپرلیه
مه شي له ما ځیني خپه سپرلیه
زه ښه راغلاست درته ویلینه شم

ځه ببرته ځه په مخ دي ښه سپرلیه

چینار اوس هم شته خو لمبو کي سوی
نشته ورېمي دتورو زلفو ولونو
منګي یي مات دي له مستۍ لوېدلې
ګودر ته نه درومي جوپي دانجونو

خدازده چي چارانه شپېلۍ وړي ده
سندره باد مي له خولګۍ وړي ده
وخت خو تېریږي خو پیکه پیکه دئ
مزه دژوند چا لېونۍ وړي ده

خوله کي هغه ژبه اوس نه لرمه
چي به مي تاته پري سندري ویلې
هو! همغه وره نازکه ژبه
چي مي اشنا ته پري سندري ویلي

یو څو ناترسه څو ظالمو خلکو
زما دسندرو ژبه غوڅه کړله
پر دغه تور چي د منصور مرید یم
زما دخبرو ژبه غوڅه کړله

اوس چي په خوله کي ژبه نه لرمه
له ما به نه کوي ګیله سپرلیه
زه ښه راغلاست درته ویلي نه شم
ځه ببرته ځه پرمخ دي ښه پسرلیه

هغه دحسن دهېواد ملکه
هغه تېپو باندي مئینه جلۍ
هادلونګو دورېمو قافله
دپا و لۍ دار کمیس میرمنه جلۍ

هغه دتول کلي دانجونو میره
هو! هغه شوخه هغه مسته جلۍ
دوخت بادونو مړاوي کړله
هغه تنکۍ دګلو لښته جلۍ

داخپل ښایست او مینه اور شو ورته

نور يې په دې کلي کې ځای نه کېده
هسې هغه هم ملامته نه وه!؟
ځای يې رښتيا وايم په خدای نه کېده

دها چينار لاندې ويده ده هغه
زمونږ له ټول کلي خپه ده هغه
هغه چې شنه غوندې ټوټه ښکاري
دسپينکي قبر يې جنډه ده هغه

مانه يې ستا په شان جانان وژلی
سپرليه ورک دې شي سپېره جنګونه
راځه چې قبر ته يې دواړه ورشو
ته پرې زرغون کړه دګلاب ګلونه

•••

يو ليک

چاراته داسې ليک ليکلی ګواښه
«وايې زمونږ کلي ته نه راځې ته
وايمه اوس به راشي اوس به راشي
ځارمه هره ورځې لارې دې زه»

«زه هره ورځ لکه دتيرو ورځو
ځارمه پورې کنډو ستا لپاره
وايمه اوس به راځي اوس به راځي
خو بيا هم نه يې ته په دغه لاره»

«په څه خبره رانه ته خپه يې؟
چې نه دې ليک نه دې سلام رارسي
نه دې ټپه نه دې مصره دغزل
نه دې دښو بدو پېغام رارسي.»

« له مانه څه ګناه، قصور شوی دئ
چې تش سلام راته هم نه رالېږې
چې له هرتورې يې وفاڅڅيده

جملي دميني صنم نه راليږي»

«دادچا سپینو دچاوچو سترګو
کړه دنظره زمونږ ښکلي مینه
خدازده چي ولي له ګرمۍ ولوېده
ستا په وجود کي زما دمېني وینه»

«ښایي دچا دتورو زلفوماښام
درنه زمادمخ رڼا هېره کړه
یادچا تورو شوخو شوخو سترګو
زما دنظر درنه دنیا هېره کړه»

«نه نه! دانه شي کیدای خدای دي نه کړي
چي پر لوظونو خاوري واړوي ته
ماتي کړي ټولي خپلي کړي وعدې
په قسمونو خاوري واړوي ته»

«مات به نظر دوړو سترګو کړمه
لوګی ځواني به کړمه ستا له مینې
بیا به لاسونه زما له غاړي تاوکړي
بیا به مجبوره شي زما له مینې»

•••

## فیصله

دامنمه چي مي مینه درسره ده
دامنم چي لیونتوب دئ راپه برخه
خو پښتون یمه پښتو ځیني ځاریږم
بي نشې، مست زلمیتوب دئ را په برخه

دا تا چي هیري کړلي کړي وعدې
او په تروه تننده ځواب دي کړمه
تا مکمل نه کړمه پري دي ښودم
زه د نیمګړي ژوند کتاب دي کړمه

منمه ته زما دسترګو تور وي

خو اوس نو ګراني داتور نه پالمه
شپې په شوګیر به نوري نه رڼوم
سینه کي ستا یاد به نور نه پالمه

څنګ چي دي زما میني ته اور واچاوه
داسي به ستا یادونه وسېزمه
زیری یوه هم دښو رانه وړلو
نور به داټول وختونه وسېزمه

...

## مه ځه

ته مي لیدلی لاهېڅ نه وي خو بس
زړه مي داستا په شان سړی لټاوه
ښایی ساده ووم لیونی به وومه
چي په ایرو کي مي غمی لټاوه

لېچونه ستانه، زما زړه نه تاو وو
شرنګ دبنګړو نه زما خوب نه وو
لاس به مي دواړه غځول تر سپوږمۍ
لکه ماشوم خو ماشومتوب نه وو

دسترګي ژوند پر هره هره لمحه
خیال کي انځور به مي شوي ته جانانه
مابه دي غاړي نه لاسونه تاو کړل
زړه به مي تانه ځاریده جانانه

اوس چي راغلی یي رښتیني ژوند ته
ستا دي قسم وي له مالیري مه ځه
ښایي له مانه پس به ونړیږي
زما دزړه دادنیا، لیري مه ځه

...

گران ملگري فرهاد کریم ته چي اوس په لندن کي دئ

خوارړه

زما جانان زما اشنا فرهاده
ته ځومره لیري یې له ما فرهاده
خو بیا هم ومنه چي زړه کي مي یې
هسي دي نه ویني دنیا فرهاده

منمه اوسي دشیشو په ښار کې
درڼاګانو ماښامونو کي یې
خو مجازي دي حقیقت نه لري
والله چي ته په تورتمونو کي یې

هسي نه هیر دي شي داخړ کورونه
چرته چي اوسي حیا داره جلۍ
په تورو سترګو کي یې ته غړیږې
ځاري دي هره ورځي لاره جلۍ

په هره سا کي یې ستا نوم نخښږي
هغه ژوندۍ ده ستا په یاد فرهاده!
شپه شپه ورته یادېږي داسې
لکه شیرېني ته فرهاد فرهاده!

پام چي دلوخ تهذیب بربنډي انجونې
درنه ساده او پښتون زړه وانخلي
یاکومه شوخه کومه مسته جلۍ
درنه دټول عمر خوارړه وانخلي

((کلی مو څنګه دئ؟)) بس مه یې پوښته
پام دګودر پوښتنه و چي نه کړي
زانې اوس نه راځي دسیندله غاړې
دمازیګر پوښتنه و چي نه کړې

چي به د سولي لمر پري خور وو همېش
اوس په نصيب مو هغه کلی نه دئ
آن ديوالونه يي هم وسوزيدل
ښه دئ چي ګرانه تاليدلی نه دئ

جوپي دمستو انجونو نه ورځي اوس
ګودر لمبه دئ چينارونه سوي
هاشمله ور مشران ګوروخوړل
د سپين جومات مو منارونه سوي

تر نېمي شپي سندري نه وايي څوک
نه دمنګي اواز حجري نه راځي
سيتار په تير کي زوړ شپېلۍ ماته ده
نه چرته بل يو ساز حجري نه راځي

اوس ځنور زلميان اتڼ نه کوي
نه يي په غېږه کي رباب ښکاري
دورور په وينو يي لاسونه سره دي
د کلي هر سړی قصاب ښکاري

زړه کي مو ښه ډيره کينه کرلې
باران په مونږه دنفرت شوی دئ
د کرکي حکم مو سنګر ته لېږي
د سولي غږ نه بغاوت شوی دئ

((ټوپک را واخلئ هله جنګ شروع دئ))
دلته بس هره ورځي دا چيغي وي
نن وايی (( نه يي منو))ويني توئ کړئ
سبا په حق کي بيا د ((شا)) چيغي وي

...

کلی

وایې په دوړو ډک ټول کلی مو دئ
دخړ بې رنګه رنګ کورونه مو دي
له ختیو جوړ دسپېرو خاورو جوړ دئ
څومره بد رنګ بدرنګ کورونه مودي

منم ساده دئ رنګیني نه لري
لکه دښار به زندګي نه لري
نه پکي شور نه اوازونه شته دي
خو داسي نه چي څوک سړي نه لري

داخړي خړي بر جوري کلا
چي شاهداني دي دجنګ دوختو
لاهم زخمونه دګولیو لري
ځیني د روس ځیني پرنګ دوختو

دهمدي خړ کلي ساده خلک وو
نړۍ تاریخ کي یي اوس هم یادوي
شلخي ټوپک بهادرۍ کیسي یې
انګریز لا څه کړي چي روس هم یادوي

تابه زمونږ کلی لیدلی نه وي
پر شنو پټیوو یي بهار پروت دئ
یو مصور ډیر په هنر جوړ کړی
کونړی سیند لکه ښامار پروت دئ

انجوني موده وشوه کورو ته تللي
خو ګودر اوس هم لا خمار پروت دئ
هغلته چاده د لاس ننبه ایښې
هلته دچا دغاړي هار پروت دئ

کله روږه اختر کي راشه دلته
چي ډله ډله یي ځوانان ووینې
والله که یو هم دي پیرزوشي په لمر
دسرو غرمو به مزدوران ووینې

بس غریبي رابانديزور ده کنه

مونږ په پنجاب کې څه بلا غوښتله
ولې دلمر ولې باران دلاسه
مونږ به له تورونه پنا غوښتله

خیر که غریب یو زړه مو نه دئ غریب
ژوند دخوښۍ مو دوهم نوم ګڼلی
څوک دسیتار په چل چې نه پوهیږي
مونږه هغه لکه ((مرحوم)) ګڼلی

دژمي شپې بس دسازونو شپې وې
دسندریزو غزلونو شپې وې
دخنداګانو دچکچکو شپې
دنڅاګانو اتڼو شپې وې

څوک یا قربان کړي، څوک شپېلۍ غږوي
چا په منګې یا سیتار لاس ایښې وی
دزړه دنیا یې وي جنون نه ډکه
دې ځینو ځینو په یار لاس ایښې وي

...

خوب

ما ماشومتوب لیدلی
مازلمیتوب لیدلی
تانه یې نه پټوم
نن مې یو خوب لیدلی

خوب دومره ښکلی خوب و
لکه سپوږمۍ دخوارلسمې جلۍ
یا لکه شنه دښته کې
چرته پریوتې ګلۍ

اظهار يي نه شم کوی
خوب له دي ډير ښکلی و
له مانه نه هيريږي
لکه دشعر ښکلی وو

اوس مي تشبيه ومونده
خوب مي داستا غوندي و
لامي په زړه ديره دئ
ستا دښکلا غوندي وو

ته وي په شنه جوړه کې
پاس په ډولۍ کي ناسته
څه عجيبه ښکاريدې
سپوږمۍ سپوږمۍ کي ناسته

چرته که خوب زما رښتيا وخاته
زيارت ته ښي ډيري جنډي اخلمه
دچارشنبي په ورځ پري ټولي خوروم
له وس نه زياتي لوپټي اخلمه
دابه دسولي په پال هم ونيسم
په سرو دي اور ولګي شني اخلمه

هغه چي روزانه راځي کلي ته
هغه ملنګ ته به خيرات ورکوم
دخوارکي خوږه ده ډيره خوښه
يوه پياله نيمه به شات ورکوم

هاښکرور پسه تري اخلمه به
زه د«بادام» دي تر رمي ورځمه
د قرتو ماته او سوچه غوړي پرې
بيا هم په ټکنده غرمي ورځمه

ټول خيراتومه خو پوستکی به يې
ته ښه خبره يي چي چاته ورکوم !؟
تير ماسختن کي زما نکاح به تړي
زه يي دخپل کلي ملا ته ورکوم.

مو رته مي زيری د واده ورکوم

سهار وختي به هديري ته ځمه
تا ته تري ښي ډېري دعاوي اخلم
د خداى سپيڅلي مېلمني ته ځمه

•••

## بنګړيواله

اوس هغه دوه مئينان نشته دئ زمونږ کلي کې
اوس دمچکو خرپانه راځي دبرګو درنه
خدازده چي څوک يي په مريوو باندي غلي شو چې
دچټو پېغلو خندانه راځي دبرګودر نه

ها بنګړيواله تروری، نه راځي زمونږ کلي ته
پيغله يوه نشته بنګړي يي دلته نه خرڅيږي
زمونږ په زړونو کي کيني دي غځوني کړې
دلته اوس مينه په پيسو ده دلته زړه خرڅېږي

دلته شپونکی به وو شپېلۍ به وه سندري به وي
خدازده چي چيرته لاړ په غره کي يي رمه نه ښکاري
ددي باروتو لوګو هر ځای کي تياره خوره کړه
کلی سحر نه لري کلي کي غرمه نه ښکاري

اوس د ها ((تور ملنګ)) په خوله کي نشته دغه چيغه
((بچي مو لوی شه، يوه لپه غنم راوړۍ راته))
دديوال ګوډ ته به يي وکړه تکيه وبه يي ويل
((په هيڅ هم کبر نه کړم هر څه منم راوړی راته))

دي ځينو ځينو زورورو دا کارونه وکړل
ولاړ ديوال يي چرته پري نه ښوده کلی وران شو
چي پوهيدل په ((وو)) او (( بو)) هغه کافر کړلی شو
يو کليوال يي چرته پري نه ښوده کلی وران شو

چاچي به چېغي دا اسلام اسلام وهلي دلته
هغوی جومات وران کړ قران يي پکي وسوځاوه
دوی خپل خيبونه خپلي خېټي پکي ډکي کړلې
خوزمونږ ګران افغانستان يي پکي وسوځاوه

دوی به ویل چي ثواب وګټيځ جنت ته لاړ شئ
خو اوس پخپله يي زړه تور دئ داخبري نه کړي
لا يي تهوپک اوږه کي پروت دئ سوله نه خوښوي
دڅو بدرنګو دلته زور دئ داخبري نه کړي

مونږ چي کباړ ورلېږو مونږته بيرته توري راځي
خودبه زمونږه د وطن مورګاني بوري راځي
مړه بشيره اشناته هم عجيبه سړی يي
دوی په جنت څه کوي دوی له دلته حوري راځي

## کينسر

مادرته نه ويل چي سينګار مه کوه
مادرته نه ويل چي ځان مه جوړوه
په شين کميس دي پاولي مه ټک وهه
ځان نه دستورو اسمان مه جوړوه

مادرته نه ويل مينيږي په تا
دزمکي هر مخلوق چي وديويني
ګوته په غاښ پاتي شي ستا حسن ته
ملکي هر مخلوق چي ودي وينې

مادرته ويل ،چي له هوا ځيني هم
ځان پټوه دربادي ونه لګي
لمر او سپوږمۍ خو بيخي زيردي درته
قيامت رانه شي لاندي ونه لګي

زما دي نه منل مغروري جلۍ
بي شمېره زړونه دي مئين کړل په ځان
خپلو کافرو اداګانو باندې
آن چي رنځونه دي مئين کړل په ځان

سرطان دي ژوند غواړي توده غېږه کې
له سپين مړوند نه دي مچکي اخلي
هسي نه ښېله دي کړي ګلي له ما

له خوارږه ژوند نه دي مچکي اخلي.

•••

دروازه مه بندوه!

یو لیونی چي سیپاري یي د سندرو زده دي
یو لیونی چي یي بلا روغي خبري زده دي
چي په شیبه کي د ښایستوو زړو کي لاري کوي
څه جادوګر نه دئ خو ډېري یي منتري زده دي

ها سمندر غوندي خاموشه په خپل لوري روان
ها لیونی چي دي پري ډېري جینکۍ مئینې
د پسرلي د شنو رنګونو انځورګر سړی دئ
ځکه خو دي پري له سر تېري جینکۍ میینې

ها د غزلو شهنشاه، ها د رنګونو شاعر
په زمکه وګرځیده هم په لیري غرونو شاعر
ستا د ښایست تشبیه پسي وواته کوره ځینې
خو لا تر اوسه مونده نه کړه له کلونو شاعر

ښایي له نیمي شپي نه وروسته چرته کورته راشي
خو ستادي پام وي له ماښام، دروازه مه بندوه
او یا وختي راشي، اوزګار شي ، لیونی دئ کنه!
لکه راته به چي مدام، دروازه مه بندوه.

ستادښایست تشبیه به نه یي وي موندلي منم
خو ستا به مړو ستر ګو ته نوي زندګي ورکوي
ستا په لټون پسي چاڼ کړی کاینات به یي وي
تناکي پښي به یي د دغي ګواهي ورکوي

ښایي په تن به یي جامي د پټوني نه وي
بهر وریږي به ګلی، دروازه مه بندوه
دا به یخنۍ نه وي بېزاره، لیونی دئ کنه!

خو ته يي ساته له سيلۍ، دروازه مه بندوه

......

پای

## دليکوال لنډه پيژندنه




شاعر : بشير ګواښ ( بابک )
اړيکې : hajrulaswad@gmail.com
۰۰۹۳ (۰) ۵۴۹۵۶۰۷۰

## پـــــای